## بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلاة والسلام علی من لانبی بعده .

لـه سـتاینې او لـوربنې نـه وروسـته د طنزونـو ددې ټـولګې لاملونه زمونږ د مجاهد او ځوربدلي ولس د غمونو او کړاوونو زمـوللې څېـرې، زمـونږ دځینونـا اهلو، کرغېړنـو، مـاښیجنو، لاسـپوڅو اوګوډاګیـو سیاسـي رهبرانـو نـاخوالې او بـې تولـه کړنلارې، انحصار طلبي، درغلي او نور هغه څرګند ناوړه اعمال دي، چې افغانستان یې ړنګ کړ، ملي املاک یې لوټ کړل او د پردیـو د مصـالحو لپـاره وښندل، چاروسي ښـکېلاک تـه د ویـړ کولو ناکامې هڅې وکړې، چا تور مخو غلیمانو سره سودا کړ او نورو دترهګرې امریکا په مشرۍ د غربي صلیبیانو ټلوالې سره د پت، عزت، عفت، ناموس، هېواد او امت سودا وکړه .

طنز د ادب یو زړه راښکونکی صنعت دی، چې ظاهر یې خندوونکی او باطن یې ژړوونکی وي، ما د خپل چاپېریال اوعصرناخوالې او نادودې لیدلې انځورلې، د طنز په پسولونو مې پسوللې او بیا مې په دې ټولګه کې راټولې کړې دي، د دې ټولګې څه طنزونه ما د آی ایس آی او سي آی ای له پېښوره تر ګوانټانامو د زندانونو له شپو او ورځو نه مخکې لیکلي دي او څه طنزونه مې بیا له زندانه دراخلاصېدو نه وروسته لیکلي دي. هیله لرم چې لوستونکیو ته په زړه پورې وي.

د ګډوډۍ په پېرکې د بې تمیزو او بدتمیزو یوه غونډه جوړه شوه، چې ټولو بې توله رهبرانو او ادیبانو پکې ګډون وکړ او د یو ګردي مېز چاپېره کېناستل ، د غونډې مشري د سمنډیل مېښین په غاړه وه، هریو په خپل وار راپاڅېدا او په خپلوزیړو اقوالو یې د غونډې تالار ته بوږنوونکی تعافن ور وباښه .

# د کوزې پښتونخوا لیکوال

د کوزې پښتونخوا لیکوال نثاراحمد په خپل وار راپاڅېد او د خپلې لیکلې مقالې په لوستلو یې داسې پیل وکړ:
شیراوزلی یوینګ هلک ؤ، مونږ به ډیلي داګریکلچر کالج په ګراونډ کې کېل کولو، هغه راته یوه ورځ ووې د اونیس سو بهانوی (۱۹۹۲) کال پهلـه میاشت وه زه او ایسا کی کوم چې بچپن نه زما دوست ؤاو د نیشنل سټوډنټ فیډرېشن جنرل سیکرټري دی، دیونیورسټۍ د الیون نمبر هاسټل له مین ګېټ نه رااوټ شو، سخته ګرمي وه له ډېرې ګرمۍ نه سپو لینګویجونه را اوټ کړي وو، ایجوکېشن آفس کې زما یو بزنس مین دوست ؤ، هغه ته د څه بزنس آفر شوی ؤ، ما ورته ووې چې زما پرافټ هم په نظر کې ساته څه ډیوټي میوټي راته ګوره، که نور څه نه وي سرکولېشن منېجر مې ولګوه؛ خو څه لګن مې پکې ونه لید.
زما پلار د سن پینسټ له لړایي نه راروستو میونسپل کارپورېشن کې بابوؤ؛ خو اوس ریټائر شوی دی، څه وخت خو په پنشن ګوازه وشوه.

ما په سن پچاسي کې مېټرک په تړ ډویژن پاس کړی دی، ډېره خواري مې وکړه چې ډیوټي مې ولګي؛ خو چا لفټ رانه کړ، غریبي ده د پینټ کار چې شروع کړ، ډیلي به مې لګاتار مزدوري کوله ګېټونه، کمرې، او د هرشي پینټ کولی شم، دهر ډیزائن کلراو د پینټ کوالټي پېژنم، یو سېراوړه به مې ګټل؛ خو اوس لېبر سوا شوی دی او ډیلي کار نه ملاوېږي، تره مې سپرنټنډ نټ ایډور ټایز منټ اینډ شاپ استېبلشمنټ دی اود چاچې وررور مې په ګورنمنټ کې ډ پټي سپر نټنډنټ دی؛ خو زما پلار سره یې نه لګي او سن بهتر نه زمونږکیس په کچرو کې روان دی.

د ترور زوی مې سپر وایزر دی، هغه راته ډایرکټر آف میپ پبلیکېشن ته له اسسټنټ کمشنر نه سفارشي لېټر واخیست؛ خو د جبب تش والی مې رکاوټ دی، نن سبا کرپشن ډېردی او هریوکار په رشوت دی. د مقالې په اخر کې یې لیکلي وو، تعلیم په مورنۍ ژبه غواړو، ورلاندې یې لیکلي وو: نېشنل سټوډنټ فېډرېشن. نثار احمد چې مقاله ولوسته مشتاک اهمد پا څېد او ویې ویل: نور ښه دی؛ خو یوه اصلاح یې پکې وکړه داونیس سو بهانوی په ځای یې ایک هزار نوسو دوه د بره لس اتیا ولیکل او ویې ویل : اوس پښتو شوه نورصحیح دی.

# د طالبانو د اسلامي امارت استازی

د ختیز زون دطالبانواستازی په خپل وار پا څېد او ویې فرمایل:

د طالبـانو اسـلامي امـارت چـې د خلکـو د سـوکالۍ او ارامۍ د ندې په غاړه لري، خپلو مسئولیتونو ته پوره متوجه دی، د بېلګې په توګه به زه د تېرو څو کلونوهغه ویاړمن زیر خدمتونه یاد کړم ، چې د طالبانو اسلامي امارت دختیز زون چاروا کود ختیززون عالیقدرتنظیمه رئیس له سرپرستۍ لاندې سرته رسولي دي:

اګر چې امیرالمؤمنین زمونږ له دې زیرو فعالیتونونه خبر نه دی؛ خو دا زمونږ د شخصي هڅو په رڼا کې ترسره شوي دي.

۱-د ختیز زون د امر بالمعروف او نهی عن المنکر ریاست په درې واړو ختیزو ولایتونو کې د ږیرې په لنډولو، پګړۍ نه لرلو، واسکټ نه اغوستلو، نیمګړې استنجا ،تسپونه لرلو ختم خوا جه ګان کې د ګډون نه کولواو داسې نورو مهمو فرایضو په نه ادا کولو (۷۵۸۳۹) سرې او ښځې ډبولي دي، چې د ځینو حالت پکې داند ښنې وړ دی.

۲-د طورخم او جلال آباد ترمنځ سړک ته پیوندونه ولګېدل.

۳-د امارت لوړ رتبه مامورین بې مهاره پرېښودل شوي دي، څه یې چې خوښه وي کوي یې .

۴-د امارت لوړ رتبه (۵۲۲۱) مامورینو دویم درېم او څلورم ودونه وکړل، کورونه او مځکې یې واخیستې .

۵- له ټولو ختیزو ولایتونو نه له خلکو په ډېر دقت او غور سره عشرونه او زکاتونه راټول او د تنظیم د رئیس او والي په تالي څټوو وېشل شول ، تر دې چې د اپین عشر هم واخیستل شو .

۶-د باندنیو هېوادونو سره پروتوکولونه لاسلیک شول او دمعلوماتو او خبراتو تبادلې وشوې، د ساري په توګه :

په جلال آباد کې د پاکستان د زراعتي ماهرینو او زراعتي طالبانو ترمنځ د مهارتونو تبادله په دې ډول وشوه .

الف : د افغانستان زراعتي ماهرینو د پاکستان د زراعتي پرسونل د تربیې لپاره د زیتون د ونو په کرلو او تربیې کې یو کورس پرانیست او د زیتون بوټي یې د ښه نیت او ښه ګاونډیتوب په بنسټ ورکړل .

ب: په بدل کې د پاکستان زراعتي ماهرینو طالبانو ته د ټېپرو د کرلو لارې چارې ور زده کړې او زیاته یې کړه :

ټېپر ډېر ښه شی دی، د زیتون د انه وړه او د ټېپرو ښه غټه ده ، زیتون لږ او ټېپر ډېر کېږي، زیتون خاص او ټېپر عام خلک خوړلای شي، که چاسره دې جنګ شي،د زیتون د دانې په ګوزار هیڅ نه خوږېږي او د ټېپر په ګوازر یې ښخ وځي، زیتون تک تور او ټېپر ښه ښایسته تک سپین دي، زیتون زړې لري چې نه خوړل کېږي او ټېپر بې زړې مېوه ده او ټول خوړل کېږي.

زیتون خام نه خوړل کېږي، تېل او اچار ترې په ډېر کړاو ایستل کېږي او جوړېږي؛ خو ټېپر خام او پاخه ، په اسانۍ خوړل کېږي ، د زیتونو ونه لوړه ده او راشکول یې ستونزمن دي او ټېپر ونه نه لري، له ځمکې نه اسانه او بې کړاوه را ایستل کېږي.

د زیتون ونه او پاڼې سپېرې او بدرنګې دي او د ټېپرو بوټی تک شین او ښکلی دی، د زیتون ښاخونه کلک او سخت دي او د ټېپروډنډر داسې پاسته دي لکه د پیر صاحب مبارک لاسونه.

په دې کې دختیز زون تنظیمه رئیس را ورسېد ،هغه زیاته کړه : امیر المؤمنین ساده سړی دی، د ګوندیانو حقوقو ته پاملرنه نه کوي، غیرت میرت ډېر یادوي او هیچا ته غاړه نه ږدي... زه خو شکر دی په دې ټولو خبرو پوهېږم، عمر مې ځلو ښت کاله دی؛ خو تجربه مې د اتیا کالو ده، امیرالمؤمنین

خبر نه دی؛خو مونږ چارې مخ په وړاندې بوزو، دګونډیانو یوکرنل غلام راسره دی، خلکوته وایم چې دازما حکیم دی اوعلاج مې کوي؛ خوپه اصل کې هغه ماته اوامر راکوي اوزه یې ښه په اخلاص عملي کوم، دې ته وایي سرشته.

خبرې د رازدي تاسو ته یې وایم او چاته به یې نه وایئ دازموږ ښکېني ددال چپاتیواو لنګونو باداران اګر چې له رنګه لږ تور دي، خومونږ غوندې مخلصینو ته تل خپلې پاتې کاسې او تالي راوړاندې کوي او مونږ بې کبره خلک یو؛ نو ښه په اخلاص یې څټو، دا زما د څټ پاڼې وګورئ دا د همدې کاسود څټلو له سوبه داسې پړسېدلې دي، د پنډیو، خېټې او نورو هندوانو خو به لادرته څه نه وایم ..... خبره بلې خواته لاړه، ما ویل چې زمونږ ددې ګونډیانو د ښکلو زیړو او تورو مشورو او اوامرو له سوبه اوس مونږ امیرالمؤمنین معزول کړی دی اواصلي امیرالمؤمنین همدا کرنل صاحب دی، شکر دی لله الحمد ماسره ټول هغه مخلصین ملګري دي، چې افغانستان، اسلام، پت، عزت، امت او داسې نور د تجارت توکي یې په ډېرښه نرخ په دې ښکېنیو ګونډیانو پلورلي دي، په ښه نیت یې د ثواب لپاره ډېر عرب او عجم د ګوانتانامو او نورو زندانونو ته لېږلي دي، او نورې ډېرې ښکلې کارنامې یې سرته رسولې دي.

مونږ هم د روغ نيت ، فراست او ديانت له کبله د هغوی احسانونه نه شو هېرولی، کابل کې ځينو ساده ګانو څه موزيم غوندې جوړ کړی ؤ ، او ټول زاړه پاړه شيان پکې وو ، مونږ د احمد شاه بابا زړه پړه پګړی، څه زړې پړې تورې او ټوپکونه، څه زاړه پاړه قلمي کتابونه، څه ناروا بوټان او نور زاړه پاړه شيان د ښکېنيو ګونډيانو ځينو محترموزيږ دسمالو علماء کرامو او څولنګ وهلو افسر صاحبانو ته د روغ نيتۍ او ښه ګونډيتوب له سوبه ورکړل او هغوی مونږ ته په بدل کې ډېر ښکلي ښکلي او نوي نوي کموډونه ، ښايسته او رنګين نوي نوي پلاستيکي لوښي، ښکلي ښکلي زيږ دسمالونه، دنسوارو توکولو لپاره تفداني، نوي نوزي او ښکلي ښکلي پرتوګاښونه، د ښګلو ښکلواو تېرو تېرو اغزيو تخم او ښکلي ښکلي بمونه اوبارود راکړل.

## د خلقي سازمان غړی

په دې کې د خلق (کمونستي) ګوند د سازمان يو غړی راپاڅېد او داسې پيل يې وکړ:

اجازه راکړئ چې د اکتوبر د ستر انقلاب نه په الهام او د ثور د ديموکراتيک انقلاب نه په نماينده ګۍ وغږېږم، د ثور انقلاب د بزګرانو، کارګرانو او زحمتکښو انقلاب دی، دا انقلاب په ديموکراتيکو پرنسيبونو ولاړ او د مترقي انقلابي ايډيالوژۍ څښتن دی، د دې انقلاب په برکت هغه بورژوازي طبقه بېخي له منځه لاړه، چې د کارګرانو او بزګرانو حقوق پکې خوندي نه وو، د خلق ديموکراتيک ګوند پټېلې چې خلکو ته کور، کالي او ډوډۍ ورکړي؛ خو چپ افراطيون، تنګ نظري ناسيونالستان او د ارتجاعي ايډيالوژۍ پلويان نه غواړي، چې د دې مترقي ګوند ارمانونه پلي شي.

ارتجاعي ايډيالوژۍ له خلکو نه د اخلاقو او شرافت په نامه آزادي، مساوات او نور ټول حقونه اخيستي دي، زمونږ وروسته پاتې ټولنه تر هغه ترقي نه شي کولای چې ترڅو د اخلاقو، شرافت او دين په نامه اپين يې له مغزو نه وي وتلی.

لیکوالان او ادیبان باید د پوره ازادۍ او دیموکراسۍ په هکله لېکنې وکړي.

الکساندر میخایل وینو ګروف وایي:

اخلاق د هنر پرستېژ راټیټوي.

( شارل بودلر ) په ګوچنیوالي کې د اخلاقي فساد په تور له ښوونځي نه وایستل شو.

( نروال) به د شپې لغړ ګرځېده.

( پل ورلن ) یو عیاش شرابي ؤ.

( شرماکوف ) به د هر چا جنسي غوښتنو ته مثبت ځواب وایه.

چې دا ټول د دیموکراتیکو ارمانونو نماینده ګي کوي.

مونږ یوه داسې ټولنه جوړول غواړو چې د شرم او حیا په نامه پکې څه وجود ونه لري او د ... او پوزې ښکاره کول یو ډول وګټل شي، د همدې ارمان د سرته رسولو او پلي کولو لپاره موخپل روسي باداران افغانستان ته راوغوښتل، ځمکې مو شاړې کړې، کورونه او جوماتونه مو ړنګ کړل، یو نیم میلیون وګړي مو ووژل او د خپلو وګړو دین، پت، عزت، ناموسونه او ګرد وطن مود هغوی چوپړ ته وړاندې کړل، خو دریغه چې چپ افراطیون زمونږ د ارزښتناکو اهدافو په مخکې خنډ شول او زمونږ او زمونږ د بادارانو نظامونه یې دړې وړې کړل، اوس هڅه

کــوو چــې خپلــو مخونــو تــه بــل پوســتکی ور واغونــدو او امریکایانو سره څه سودا وکړو .

## د امریکې پلاوی

د امریکې د پلاوي یو لوړ رتبه چارواکی راپاڅېد او په خبرو یې داسې پیل وکړ:

مونږ آزادي او دیموکراسي غواړو، د دیموکراسۍ پـه لار کـې مـو خپـل شـین سترګي او سـپین پوستي بې مهاره پرېښـي دي، خوښـه یـې چـې د سـپو غونـدې ژونـد غـواړي او کـه د خـرو غوندې، مونږ هیڅ معیارونه او موازین نه لرو او هیڅ انساني او اسماني تلې او بریدونه نه منو، د دیموکراسۍ په لار کې مو تور پوسـتي لـه ټولـو حقوقـو محـروم کـړي دي او دا ځکـه چـې مـونږ بدرنګه نړۍ نه غواړو؛ مونږ غـواړو چـې د تورپوسـتو تخـم ختـم شـي او ځـای یـې سـپین پوسـتي ونیسـي او دیموکراسـي پلـې شـي،زمونږ د دیموکراسۍ دوه تلې دي، یـوه هغـه ده چـې خپلـو ځانونو ته یې پرې راتلو اوبلې باندې یې دربېمې نړۍ تـه ورکـوو، مونږ د دیموکراسۍ د پلې کولولپاره ددربېمې نړۍ د استبدادي او دیکتاتوري نظامونو پوره ملاتـړ کـوو، د هغـوی پـه زندانونو

کې چې له ځورونو لاندې کوم وګړي وژل کېږي او په میلیونونو خلک د خپلو حقوقو غوښتلو په جرم د تورو تمبو شاته پراته دي، دا ټول د دې لپاره چې د یموکراسي پلې شي، د عربو د تېلو ذخیرې مو ځکه په خپلو لاسونو کې نیولې دي، چې دیموکراسي پلې شي، اتومي، بیالوژیکي، لېزري او هایډروجني وسلې د دې لپاره جوړوو او استعمالوو چې د یموراسي پلې شي. هو دا یوه خبره ټول ښه په زغرده او په ډاګه واورئ چې مونږ تاسو لپاره هغه دیموکراسي نه غواړو چې خپلو ځانونو لپاره یې غواړو، بلکه تاسو لپاره مونږ د ځانګړي ډیزاین د یموکراسي تیاره کړې او نقشه کړې ده ، پام کوئ چې په غلط فهمۍ کې واقع نه شئ، که تاسو چېرته د امریکاغوندې د یموکراسي وغواړئ، نو انجام به مو د جلال آباد د هغو تنکیو ځوانانو غوندې وي چې دقرآن په دفاع کې یې مظاهرې وکړې اومونږ او زمونږلاسپوڅواوګوډاګیانو زمونږ په امر او زمونږ د خوشحالولو لپاره په مرمیو سوري سوري آخرت ته ولېږل.

وګورئ چې مونږڅومره بشر دوستان یو؟!په عراق کې مو یو میلیون ماشومان ددې لپاره له ولږې ووژل، چې دیموکراسي پلې شي. مونږ حق لرو چې اتومي وسلې جوړې او استعمال کړو او د جاپان په هیرو شیما او ناګاساکي مو له همدې امله اتوم استعمال کړ، چې د یموکراسي پلې شي، اوس څه خلک

راپاڅېدلي دي او نه غواړي، چې زمونږ دغه ارزښتناکه ديموکراسي پلې شي، دا ډېرې بې انصافه اوبې رحمه ترهګر دي، مونږ د دوی د ختمو کورونه او جوماتونه ړنګ کړل، چې هيڅ ارزښت نه لري، که يو د بل له پاسه يې کېږدي او په لکونو چتونه تري جوړ شي او تر اسمانه هم ورسېږي؛ خوزمونږدنيويارک هغوبرجونوسره چېرته برابرېدای شي، چې له وربځو سره يې ډغرې وهلې؟!

مونږ له ترهګرو نه نه وېرېږو، دايو موټې ترهګردي، مونږ ټوله نړۍ له ځانه سره راټاله کړې ده اويوه داسې لويه نړيواله ټلواله مو جوړه کړې ده، چې د عربو او عجمو ټول استبدادي رژيمونه راسره دي، له هيچانه وېرېږو او ګرده شپه پېرې کوو، کابل مونرغوندې هر ځای د شګو دبوريو له دېوالونو ډک کړی دی او هرځای مو پېړ او پنډ سيمټي بنديزونه د سړکونو له پاسه ايښي دي، که ترهګر دومره تکړه وي، نږدې خو دې راشي چې مونږ څنګه تښتو، دباګرام، قندهار،ابوغريب او ګوانټانامو زندانونه مو ددې لپاره جوړ کړي دي، چې د يموکراسي پلې شي او هلته انسانانو سره له حيواناتو نه بتر سلوک د همدې لپاره کوو، چې ديموکراسي پلې شي. په مطبوعاتو او خبري رسنيو مو د دې لپاره بنديز لګولی دی، چې د يموکراسي پلې شي، هو که زمونږ درواغ ريښتيا کوي، ماتې مو بريا ګڼي، تلفات مو

پېټوي، د دښمن بريا موماتې ګڼي، ناشوي تلفات ورپېښوي او هرڅه زمونږ په ګټه خپروي، نو بيا خير دی، خو حقيقت اوريښتيا نه به په کلکه ځان ژغوري او کلک پرهېز به ترې کوي او دا د دې لپاره چې ډيموکراسي پلې شي، د قرآن توهين د دې لپاره کوو، چې د يموکراسي پلې شي. شکر دی سعودي، کويت، پاکستان، افغانستان او ګردې نړۍ کې ښه ډېر ګوډاګيان لرو او خپل لاسپوڅي حکومتونه مو جوړ کړي دي، هرڅه چې ورته وايو مني يې، پاکستان کې ډالر غورځوو او سړي راپورته کوو اوه نيم سوه سړي مو د يو موټي ډالرو په بدل کې ترې واخيستل، پاکستاني چارواکي راته دپنځه ډالرو په بدل کې مور هم راکوي او د ښه وفادار سپي کردار ادا کوي، هرڅه چې ورته وايو مني يې، زمونږ ډالرو لپاره مدرسې ، جوماتونه او کورونه ړنګوي، جېلونو کې خلک وژني، قبايل يې ړنګ کړل اونور هم لګيا دي.

دافغانستان ځينې پخواني جهادي مشران موبېخي تابع دي، ډيرې يې په سپو تالاشي کوو په ... کې ورته ګوتې وهو؛ خو ښه ساړه او په ارام ولاړ وي، ددوی په حوصلودې آفرين وي، او دا دې لپاره چې د يموکراسي پلې شي.

ټول افغانستان نه مووسلې راټولې او ضايع کړې اوټول قومندانان او رهبران موډې ډي آرکړل يعنې ومو غ.... او دا ټول

ددې لپاره چې ډيموکراسي پلې شي، دا هغه افغانان دي، چې زمونږ د ښمنانو (روسيانو) ته يې ماتې ورکړه او شوروي اتحاد يې دړې وړې کړ. ريښتيا خبره داده چې کله شوروي اتحادنه ؤ مات شوی؛ نو په مونږ خوب حرام ؤ اوزمونږ د پنټاګون او سپينې ماڼۍ چارواکود شوروي اتحاد له وېرې په واشنګټن کې سوځې کولې؛ خو اوس چې شوروي اتحادمات شوی دی؛ نو اسلام او افغانان يو ستر خطر دی، دا دواړه بايد له منځه لاړ شي او دا ځکه چې د يموکراسي پلې شي، مونږ سره اوس ډ ېرې اند ېښنې دي او ګومان مو په باور بدل شوی دی چې امريکا به دړې وړې او ړنګه شي؛ خو زمونږ دوه مخې ډيموکراسي به پلې نه شي.

## يو رهبر نما اخون

په دې کې ديوه پښتوانې جهادي تنظيم اوسنی اميراخون مولوي صاحب راپاڅېد ، د دې لپاره چې د هغه د پېژندنې پوره حق مو ادا کړی وي، د هغه د وينا د بېلګو وړاندې کولو نه مخکې لازم ګڼو چې د هغه په ځينو مناقبو ، سيرت او فضائلو باندې رڼا واچوو:

هغه محترم فضيلة الشيخ، جامع المعقول والمنقول، شيخ العرب والعجم، بقية السلف، خطيب ملت، مقررشغله بيان، سالار ثعلبان، عميل الطواغيت ...د غټو غټو پنډيو او پلنې پوزې څښتن دی، له جومات سره يې دومره مينه وه، چې له رهبرۍ نه مخکې ټول عمر يې په امامتۍ کې تېر شوی ؤ ، نظافت يې ډېر خوښ ؤ؛ نو له همدې امله به چې هر مجلس کې ناست ؤ ، په پوزه کې به يې ګوتې وهلې، د ډېرې حيا له مخې به يې له خلکو نه په پرده کې د پوزې نسوار کول، ډېر واقعيت پسندؤ ، د هغه د واقعيت پسندۍ يو ژوندی ساری داؤ ، چې زامنو ته يې له ډوډۍ نه وروسته مسنون دعا ښوولې نو ورته ويې ويل چې دا دعاء به لولئ.

اللهم اطعم من اطعمنا واسق من سقانا

(ای الله چا چې مونږ ته ډوډۍ راکړه، ته ورته ډوډۍ ورکړه او چا چې اوبه راکړې ته ورته اوبه ورکړه)

چا ورته وویل: دا خو هغه دعاء ده چې مېلمه یې لولي، چې په کور کې یې وایي هغه دعاء ور زده کړه، هغه وویل: واقعیت دادی، چې مونږ په کور او سارا دواړو کې مېلمانه یو، تل د نورو ډوډۍ خورو، مقتدیانو سره دی خدای ښه وکړي، ډېر اخلاص لري، دومره وظیفه تل راکوي چې زمونږ د ټول کور بس کېږي، وچه ډوډۍ لا زیاتېږي، دشین ګل کاکا غواوو ته یې ورکوو، چې مونږ ته شرومبې او څپیاکې راکوي، نو د وخت ضیاع ښه نه ده یوازې همدا د مېلمه دعاء ور زده کوم.

اخون مولوي صاحب په خپل وارد هجرت، مدرسې، جومات، یتیمانو، کونډو، خیرات، ورکړې، طالبانو او داعیانو فضایل بیان کړل، عربانو ته یې د خلاص مټ خیراتونو ورکولو له امله خصوصي دعاوې وکړې، د راتلو نکې برنامې په ترڅ کې یې وویل:

زه غواړم په ځینو علاقو او منطقو کې دوه دوه زېږنتونونه جوړ کړم، یو به یې د نارینه و او بل د ښځینه و لپاره وي.

اخون مولوي صاحب په دې خبره ځکه ملامت نه ؤ، چې له هغه نه مخکې یوه مقرر ویلي وو، زه غواړم چې د خپلې منطقې د ښځو لپاره یو زېږنتون جوړ کړم.

نو اخون مولوي صاحب بې چاره په پښتو ښه نه پوهېده چې زېږنتون څه ته وايي؟ او غوښتل يې چې د راتلونکې خدمتونه په ګوته کړي؛ نو ځکه يې وويل چې زه دوه زېږنتونونه جوړوم يو دنارينه و او بل د ښځينه و لپاره او زه خپله به يې په راس کې واقع يم، همدارنګه غواړم يو د عوتي مرکز پرانيزم اورياست يې په خپله غاړه واخلم،له عربانو نه د معيوبينو، يتيمانو، کونډو، جوماتونو، امامانواوداعيانو د کفالتونو او ضرورتونو د جلبولو لپاره به يوه خيريه مؤسسه جوړه کړم او په خپله به يې په نفس نفيس رئيس شم. زه خپله معيوب او يتيم يم، ښځه مې کونډه ده ، لونې او زامن مې يتيمان دي، زمونږ کور، ستور او کلب عين جوماتونه دي، زه امام يم او مونږ ګرد سره داعيان يوو، مونږ د خپلې اسلامي خېتې د خدمت په لار کې خپل ټول ژوند وقف کړی دی او د هر ډول خيرات، زکات، سرسايې، اضحيې او څرمنو مستحق يوو.

د ذهبي فرصت له لاسه نه ورکولو په درک يې وويل:

دراتلونکې جمعې په ورځ زمونږ په جامعه کې چې مديريت يې زما برخودار په غاړه لري، د تقسم اسناد په مناسبت يوه عظيم الشان اجتماع ده، تاسو ټولو ته داشتراک دعوت درکوو.

والسلام

# د تقسیم اسناد غونډه

سبا د دعوت مطابق جامعې ته ولاړو، سرې او شنې رنګینې ټوټې ځړېدلې وې، آیاتونه، احادیث، اشعار، اهلاً وسهلاً ومرحبا بضیوفنا الکرام، دامیراخون مولوي صاحب زیړاقوال او داسې نور زړه راښکونکي شعارونه پرې لیکل شوي وو، په غبرګو اوازونو ترانې، بیانونه او موعظې پیل شوې وې، د مزین سټېج چاپېره منورین، فضلاء، علماء، او مقربین ناست وو، د ویډیو اوکاغذي عکاسۍ کېمرې د انځورونو په اخیستلو بوختې وې.

هرچا په خپل نوبت خبرې وکړې، اکثرو د امیر مولوي صاحب مناقب او فضایل اشارتاً او دلالتاً بیان کړل او د ډېرعمر د عاوې یې ورته وکړې، په آخر کې د امیراخون مولوي صاحب مشر برخوردار سابحق صاحب، -چې دمدرسې اعزازي مدیرؤ- راپاځېد او په کاغذ د لیکل شوي مضمون په لوستلو یې په داسې حال کې پیل وکړ، چې په کینۍ لاس کې یې کاغذونه وو او ښۍ یې له شاتنۍ لمنې لاندې په ګرولو بوخت ؤ، ځرنګه چې سابحق د دعوت له نوم نه ښه ګټه پورته کړې وه او ډېر عرب او عجم یې پرې لوټلي وو؛ نو د دعوت یادونه یې بیا بیا کوله، په

بند بند کېدلو او توکاڼو نښتلو يې د ليکل شوي مضمون لوستل داسې پيل کړل: ګرانو ورونو! دعوت، زمونږ جامعه د اسلام خالص خدمت لپاره جوړه شوې ده، دعوت، او دلته د اسلامي امت د سلګونو او زرونو په شمېر طالبانو وخت ضايع کېږي نه ريښتيا خطا شوم روزنه يې کېږي دعوت، د فنونو او علومو وړې وړې مذکرې او کتابچې لوستل کېږي، دعوت، دلته درس مفت دعوت، خوراک مفت دعوت، علاج مفت دعوت، کتابونه مفت دعوت، او سېدل مفت دعوت، اودس ماتی مفت دعوت، تلل مفت دعوت، راتلل مفت دعوت، کېناستل مفت دعوت، ودرېدل مفت دعوت، ځملاستل مفت دعوت، خوب مفت دعوت، ويښه مفت دعوت او نور هرڅه مفت دي دعوت، په هيڅ هيڅ ډول پابندي نشته دعوت او هرڅوک چې هرڅه کوي خپله خوښه يې ده دعوت دعوت دعوت او اصلي شی دعوت، زمونږ جامعه د هر قسم خيرات او زکات مستحقه ده دعوت.

زمونږ کلبونه دعوت، ستوروونه دعوت، پرديو لپاره ګوډاګيتوب او کارکول دعوت، خوراک دعوت، اودس ماتی دعوت، اوهرڅه دعوت دعوت دي. په دې کې د بوټ پاکۍ او غوړه مالۍ يو ماهر پاڅېد او په لوړ غږ يې وويل: زنده بااااااااااااد دعوت.

په پای کې یې د جامعې د نشاطاتو رنګینې چاپ شوې کتابچې ووېشلې چې د جوماتونو، کتابخانو، دفترونو، مدرسواو داعیانو له پوره نه زیات تفصیل پکې ؤ،له ډېر نشاط نه یو یو تصویر درې او څلور ځل جلا جلا مخونو کې چاپ شوی ؤ او د جلا جلا ځایونو، اوجرو او کورونو تصویرونه د مدرسو په نوم ښوول شوي وو.

د داعیانو په لست کې خومې د نورو ځایونو ځینې کسان ونه پېژندل، خوزمونږ د ځای د یوڅو بزګرانواو پښانو( ینګرانو) نومونه هم دهغو داعیانو په لست کې وو ، چې کفالت یې د امیر اخون مولي صاحب او د هغه د برخوردار سابحق په غاړه ؤ. د یوه انځور (تصویر) په خوا کې یې داسې کښلي وو:

اخي القارئ! حينما تشتري لاولادک اجمل اللباس تذکران هناک بعض الايتام لايجدون اللباس الجديدفی السنة مرة ! وحينما تشتري لاولا دک احلی حلويات تذکر ان هناک بعض الايتام لايجدون لقمة عيش و هکذا....

د پای وینالپاره د ډلګۍ یو بې سواده ملا نما حاجي صاحب راپاڅېد چې هم د ډلګۍ د امیر معاون ؤ او هم متئآمر! او هم د خیریه مشاریعو د اداره نماقیچي مشر ... هغه د خپلو دوه نورو د تره زامنو له پلوه کفالة اوله خپله پلوه اصالة په رپیدلي غږ وغږېده او زیاته یې کړه :

مونږ درې واړه د دې ډلګۍ محوري او دايمي غوبل موږي يوو، هرڅه مونږ سره دي او هرڅه مونږ پورې اړه لري، زه خپله هرڅه کې د خيل يم اوپه ټولو سرببېره د خيريه مشاريعو د مؤسسې مشر هم يم، عربانو ته دې الله تعالى خيرورکړي، دجوماتونو، مدرسو، يتيمانو، کونډو، کوهيانو، کتابونو اوداعيانو په نامه خيراتونه راکوي او زه يې ښه په انصاف وېشم، څرنګه چې زما ټول ژوند خيريه کارونو لپاره وقف دی؛ نو ښه په عدل په سلو کې ٪۹۹،۹۹ د خپل کوراوځان لپاره ستنوم او پاتې هغو غوړه مالانوته ورکوم چې راسره دي. جوماتونه د الله کورونه دي او هغه به يې آبادوي، يتيمانو او کونډو ته به الله په آخرت کې د جنت نعمتونه ورکړي، دنيا دارالفناء ده، هغوی يې څه کوي؟! مونږ به پرې چېرته په کوم کلب کې ددعوت کار وکړو، مونږ دومره احمقان هم نه يو چې چا راسره احسان وکړ نو تل به يې يادوو، شکر هوښيار خلک يوو، هغه عربان چې د هغوی د جېبونو په برکت زمونږ وينې او هډوکي جوړ شوي دي او هغه اسلام چې وموخوړ، واموغوست پکې سپاره شوو او پکې واوسېدو، دقربانۍ په ورځ مو په ښه بيه وپلورل، دا غيرت ميرت د ساده ګانو شعارونه دي، مونږ شکر هوښيار يو عربان، اوزبکان او نور ترهګر مو يو يو رانيوه، جېبونه مو ورڅخه څنډل او ځينې مو د پنډو مبلغونو په بدل کې

خوشې کول او څوک چې په ډالرو پلورل کېدل، هغوی مو د خپلو بادارانو په لاس امریکا ته حواله کول، که زمونږ ټاټوبی رنګ شوڅه پروا کوي، دګواندیانو سرته دې خیر وي، مونږ دا دزرونو کالو پخوانی اوزوږ افغانستان څه کوو؟! دې ګوندیانو ته مو درخواست ورکړی چې له نوي نوزي لنګستان سره یې یوځای کړي. دا ټول د دعوت او اخلاص ثمرات دي.

## تور چارواکی

په دې کې د لنګستان یو تک تور چارواکی را پاڅېد چې لنګ یې وهلی او خوله کې یې پان ؤ. لږه شېبه ولاړ ؤ اوپان یې ژوه، په وښکیو یې د پان زیړې اوبه راروانې وې او شونډې یې داسې ککړې وې، تا به ویل چې دا اوس یې تازه ..... خوړلي دي، د پان لاړې یې شاته سپین دېوال باندې داسې ور تو کړې ته به وایې چې له نسه پرې لاړ.... چارواکي په اردو کې خبرې کولې چې ژباړه یې داده :

زما نوم چوهدري کرنل غلام دی، زه ستاسو د ګونډي ملک د هغه خواخوږې اداري تور بخن افسر یم چې مخکې جناب تنظیمه رئیس ورته اشاره وکړه، زه جناب تنظیمه رئیس نه

ډېره زياته ښکلې تکه توره شکريه ادا کوم، چې هغوی زمونږ په ښکليو تورو او رنګينو پلمو د زيږ اعتماد اظهار وکړ.

اګر چې مونږ نه تاريخ لرو اونه نوم؛ خو دا يوه خبره جوته ، ښکاره ، برملا څرګنده او ډاګيزه ده، چې د انګرېزانو غوندې هوښيار او چالاکه بادارانلرو اود همغو له سوبه او مهربانۍ مونږ ته زمونږ دا ملک جوړ شو او شکر دی تر اوسه د هغوی د کرم تر سيوري لاندې مونږ د نېکمرغه ګوډاګيتوب او غلامۍ ساه اخلو.

زمونږ د برتانوي بادارانوله برکته مونږ شکر دی اوس دومره چالاکه شوي يو، چې په پلمو او منافقت کې هغوی زمونږ شاته پاتې شول.

شکر دی خپلو برتانوي بادرانو راته انګرېزي ښکلی تک تور قانون پرېښی دی، اوپرې روان يو، دا زمونږ د فراست ، هوښيارۍ ، زرنګۍ، ښکلې درغلۍ او ښکلي منافقت لويه نښه ده ،چې د دې ملک خلک مو تر اوسه په تيارو کې ساتلي دي،دې ملک کې يې راټولوو، د دې ملک د خلکو وينې زبېښو، انګرېزان غولوو، امريکايان تېرباسو، عربان تېر باسو..... او خپل جېبونه ډکوو، شکر بهرنيو ملکونو کې موډېرو بينکونو کې حسابونه پراته دي.....

څه اسلامي او سيکولر تنظيمونه مو جوړ کړي دي، او ټول زمونږ په ډول ګډ بړي، د جهاد، اسلام، مدرسې او... خو داسې ښکلي نومونه دي، چې مونږ ته يې ډېره ګټه راورسېده، ستاسو (افغانانو) جهاد خو دومره برکتي ؤ، چې ايله په خېټه ماړه شو، پخوا به کله نا کله د مرچکو چکني راورسېده او کله به هغه هم نه وه، اوس خو مزې دي....

هندوستان سره مو د کشمير په نوم لانجه پيل کړې ده؛ خو شکر دی زمونږ پوځ روغ رمټ دی، څه تنظيمونه مود جهاد په نامه جوړ کړي دي، او هغوی زمونږ دغه سياسي جنګ داختر د قربانۍ په څرمنو او چندو مندو کوي، افغانستان خو دومره برکتي نوم اولنګه غوا ده، چې پخوا مو د روسانود ماتولو په نوم عرب اوعجم پرې ولوټل او اوس خو امريکايان او غربيان ډک جېبونه راغلي وو او مونږ راتش کړي دي، خو دې کونجونو مونجونوکې که څه پاتې وي، نو ګوره يې چې په څومره زرنګۍ يې ترې وهو...

روسان چې کله افغانستان کې وو، زمونږ لاړې تېرې وې او ډېره ګوزاره مو روانه وه، خو هغوی بې غيرته چې ووتل، نو په مونږ ډېرې سختې ورځې راغلې، شکر دی چې اوس امريکايان او انګرېزان راغلي دي؛اوس خومو پنځه واړه ګوتې په غوړو کې دي، خو دې نورو طالبانو رابانډې زار کړې،

افغانستان او هندوستان کې خو جهاد شته او هلته ځانمرګي بریدونه هم ثواب دی، خو د لته زمونږ ملک (لنګستان) کې جهاد ناروا دی، د لته ځانمرګي بریدونه ناروا دي، په کار داده چې زمونږ د ملک طالبان زمونږ ومني.

جوماتونه رنګوو، مدرسې نړوو، کورونه بمباروو، ماشومان او ښځې وژنو، مسلمانان په امریکانو خرڅوو، جېلونو کې خلک وژنو...دا ټولې دومره غټې خبرې نه دي، جېبونه چې ډکوو خو دا به پکې راځي کنه.، مونږ ویل چې مونږ به هم الله تعالی وغولوو، هم به مسلمانان تېر باسو، هم به امریکایان، انګرېزان، دناټوپوځونه اونور عرب او عجم، مسلمانان او کافران وغولوو؛ ډالرې، پونډونه، یورو، ریالونه اودینارونه ...به وګټواو دې لپاره که یو څو جوماتونه اومدرسې رنګې کړو یا داپښتانه قبایل او افغانستان رنګ کړو، نو دا خو کومه لویه خبره نه ده.

یارانې کې بنګړي ماتېږي، دومره قرباني خو به تاسو هم ورکوئ کنه.... افغانانوکې مونږ ډېرمخلصان ملګري لرو، ځینویې راته درخواست راکړی، چې افغانستان پاکستان سره یوځای کړو؛ خودانورافغانان د پخواني افغانستان د جهلم د بریدونو خبرې کوي، مونږ نه لار ورکه ده، د کوزې پښتونخوا سور پوښانو ته خو مو څه ډالرې مالرې خاورې ایرې په خوله کې

ورواچولې، شکر دی دوی خو اوس (لراو بر یو افغان) هم نه وایي او مونږ سره په شریکه پښتانه وژني او کورونه او جوماتونه یې ړنګوي، اوس خو دوی هغه سور پوښان نه دي پاتې، توتیانو غوندې شنه دي، یوازې منښوکې یې سرې پاتې دي، هغه هم مونږ اوس د ډالرو په رنګ لړلې دي، له هغوی نه اوس هیڅ خطر نشته، شکر دی پښتو منښتو مو ترې هېره کړې ده، اوس خو نږدې ده چې مونږ سره لنګونه ووهي اوپانونه راسره وژوي...

خو دا طالبان مو دسترګو اغزي دي، ډېروملایانو نه مو ورته فتوې واخیستې او زمونږ ملګرو ډېرو ملایانو ورته په قرآن او اسلام کې ښکلي ښکلي تحریفونه وکړل، خو دوی سم نه شول.

مونږ داسې طالبان غواړو - دشرقي زون تنظیمه رئیس ته یې اشاره وکړه - مونږ خو دا اسلام، شریعت، جهاد او داسې نور نومونه یوازې دکېښ کولو لپاره استعمالوو؛خوداساده ګان راپاخېدل او اوس د ریښتیانو اسلام، شریعت او جهاد غواړي!!! سرته یې دواړه لاسونه راواچول، های افسوس، څومره ساده ګان دي؟ آخر زمونږد مشر مولانا هم نه مني، څومره ښکلی زیړ دسمال یې دی، چې د زیړ خښتک ترجماني کوي!!! څومره ښکلې راوتلې خېټه یې ده؟ څومره په سیاست پوه دی!، چې

مونږ کله مدرسې ړنګوو نو یا یې لندن ته چکر ته ولېږو او یا یې سعودي ته د عمرې په نامه ولېږو.

زمونږ د مشورو له کبله یې څومره لوی (ډېزلي) نوم ګټلی دی، څومره ځمکې او بنګلې یې پیدا کړې، ښکلو ګاډو کې ګرځي، د لاهور او اسلام آباد د جنکو منځ کې تاوېږي راتاوېږي، ژوند یې جوړ دی.

او دا ټول زمونږ د ملګرتیا له برکته.

په دې کې تنظیمه رئیس راپاڅېد، لاس یې لوړ کړ او په لوړ غږ یې وویل:

زنده بااااد مولانا فضل خېټو، زنده باد چوهدري کرنل غلام، تل دې وي زمونږ بادران ....

تور چارواکي زیاته کړه: شکر دی څومره ښه تکړه او نومیالی پوځ لرو، په بنګله دېش کې زمونږ (۹۰۰۰۰) نوي زره پوځیانو هوښیاري نه کاروا خیست او د هندوستان پوځ ته د وسلو او سائلو سره روغ رمټ سلامي شول، شکر دی هم یې سرونه بچ شول او هم یې نوم وګاټه، که وړوکی غوندې بنګله دېش جلا شو څه باک یې دی؟، زمونږ د پوځ زړه ورتیا خووګوره، په اسلام آباد کې یې د جنکو جامعه حفصه فتح کړه او څومره جېنکو ته یې ماتې ورکړه؟!، عافیه صدیقي یې نرغوندې په امریکایانو خرڅه کړه او پنځه زره ډالر یې وګټل،

ځومره جوماتونه، مدرسې او د پښتنو قبايلو کورونه يې ړنګ کړل، څومره مسلمانان يې په امريکايانو خرڅ کړل، هم يې ډالرې وګټلې، هم يې سرونه بچ شول، هم يې ملک بچ کړ او هم يې ايټم بم بچ کړ. دا څو مره لويې لويې ښکلې زيړې زيړې کارنامې دي.

دامريکې پوځ ته مو اډې ورکړې دي او ښکلي ښکلي ډرون جازونه ترې پورته کېږي او په پښتنو قبايلو بمبار کوي، څومره ښه سيال دی؟! څومره ښه خوند کوي؟! او څومره خوږې ډالرې دي؟!، دا ټول زمونږ د زيړې توربخنې ادارې کمالونه او هوښياري ده.

## د کمالي اتحاد نماينده

د کمالي اتحاد نماينده په ډېرې چالاکۍ بې واره وار کې راپاځېد او داسې پيل يې وکړ:

مونږ شکر له هيچا کم نه يو، په ډېره زړنګۍ مو يو ښکلی اتحاد جوړ کړی دی او ډېر زيږور او خربيلي مو له ځان سره راټاله کړي دي، زمونږ کارنامې له هيچا پټې نه دي، روسانو سره مونږ غوندې تړون کړی ؤ، په مونږ به راتېرېدل او ساده ګانو سره به جنګېدل، د اسلام نوم استعمالوو، دلږکيونوم نه ګټه اخلو، اخوانيـــان، ديموکراتـــان، شـــيعه ګـــان، ســـنيان، پرچميـــان،

ستمیان،شغلویان، اونورګڼ (نان) او(ګان) مورایو ځای کړي دي، کابل ته د همدې چکني اتحاد له سوبه ورننوتو، ښه په سپین سترګی او مېړانه مو ملي شمتنی، ملي او دولتي املاک، زاړه اسناد، موزیم او هرڅه داسې په صفایي لوټ کړل، چې هیڅ مو پکې پرې نه ښودل او دا ځکه چې مونږ ټول ښاروالان یو او د ښاروالی د نده همدا صفایي او پاکي ده، د نورو وګړو ځمکې او کوورنه مو ښه په جرأت او زړنګی ځانونو پسې ولیکل، ددې لپاره چې ساده ګان ختم شي؛ اوړه، جامې او کورونه ارزانه شي، ترڅلوېښتو زرو پورې ساده ګان مو ووژل، په پوره هوښیاری موامریکایانو سره تړون وکړ، په اوږو مو کېنول او کابل ته مورانته ایتسل، زمونږ یو مشر امریکایانو ته مشوره ورکړه، چې دا خورورنه بمونه واړه او رنګي دي، لږ یې راډېر او ګڼ کړئ چې دا ساده ګان پکې ختم شي، اوس ښه په زړنګی حکومت زمونږ دی، پوځ زمونږ دی، امریکایانو سره ترجمانان زمونږ له خپله کوره دي، له هر لوري ډالرې ګټو اولاس په کرزي پاکوو، هم حکومت یو اوهم اپوزیسیون!!! وګورئ زمونږ تاریخ کې څومره ښکلي زیړ او تور بابونه ولیکل شول،دا غیرت میرت د ساده ګانو کار دی، مونږ شکر دی هوښیاریو، مونږهم دغربیانوزړونه ګټو او هم ډالرې، داکم عقل او ساده ګان وګوره چې په وچوشونډواو وږې خېټې لګیا دي

جهاد کوي، ځانونه وژني، کورونه يې ړنګ شول او له هرڅه خلاص شول؛ خو خپل ضد نه پرېږدي، دا اسلام مسلام خو مونږ هم يادوو؛ خو دومره کم عقل نه يو چې نږه اوسوچه اسلام به غواړو او ځانونه به پرې وژنو، مونږ ښه پوست، نرم، سيکولرازم، کمونېزم، نېشنلېزم، امپرياليزم، ډالرو، روبلونو، تومنونو، يوروګانو، ريالونو، ديناررونو او نورو ښکليو او خوږو سره ګډوډ او چکني اسلام جوړ کړی او دا ډېر ښه ډيزاين دی، اخر دنيا ترقي کړې ده.

ساده ګان لا اوس هم هغه پخوانی اسلام غواړي!!!

مونږ مترقي، هوښيار، تعليم يافته او په هرڅه پوره خلک يو، هرڅه مو نوي او مترقي خوښ دي، زړې خبرې او زاړه نومونه ټول بدلوو، دې کمپيوټري نړۍ کې دا زاړه نومونه ښه نه برېښي، مونږ شکر دی داسې نرمې ژبې او شونډې لرو چې هرې خواته اوړي او ښه په هوښيارۍ بدلېږي رابدلېږي، مونږ کې چې څوک ډېرې ډالرې اويوروګان وګټي، د هر چا زړه خپل کړي، هغه زمونږ قهرمان او اتل وي، د هغه نومونه او انځورونه بيا چوکونو کې لګوو.

دا د ساده ګانو نومونه، ارزښتونه او وياړونه زمونږ په زړه نه ځايېږي، لګيا يو بدلوو يې، رنګوو يې، نړوو يې او ډول ډول پلمې او دسيسې ورته جوړوو، شکر دی هوښياران يو، نوم او

تاریخ نه څه جوړېږي، که تاریخ مو توروي او که زیړ، نومونه مو غلامان وي او که نور، په دې زمونږ هیڅ نه کمېږي، چې جېبونه مو ډک وي نو غم مو نشته ، دا کم عقل او ساده ګان وګوره چې په سو کړکانو او سبو یې وښکي ولګېدل،مونږ شکردی غوړې خېټې ګرځو، پلو، چلو، قابلي، قورمه، منتو، آش، پیرکي، کباب، شراب او نور هرڅه خورو، شکر دی، .مزې او چړ چې دي او اوس خو د امریکانو پاتې شوني هم رارسېږي، اوس خو مو شکر دی انګرېزي ټکي هم زده کړي دي، اوس پخواني زاړه الفاظ نه وایو، شکر دی مترقي یو ټینکیو، فیفټي، سیونټي فایف وایو، برګرخورو.... تل دې وي زمونږغلامي او درغلي، زنده باد ډالر، زنده باد برګر، زنده باد بادار، زنده باد استعمار، اودې شعارونو سره کېناست.

# دوه سرى حکومت

دوه سري حکومت ته هم بلنه ورکړ شوې وه،چې خپل نماینده ګردي مېز ته راولېږي،خو هلته د دوه سرونو ترمنځ پرې سخت اختلاف راولاړ شوی ؤ،او هرسر غوښتل چې خپل نماینده راولېږي،اخر یې بادارانو ترمنځ خبره وکړه او پرېکړه په دې وشوه، چې د یو پرځای دوه نماینده ګان کانفرانس کې ګډون وکړي او د بادرانویو کس د ناظر په حیث ورسره ملتیا وکړي، کله چې د دوه سري حکومت پلاوي ته د خبرو بلنه ورکول شوه؛ دوه کسان راپاڅېدل او هریو غوښتل چې لومړیتوب ورکول شي.

یو شور او زوږ جوړ شو، د خپلیو ګوزارونه ، د ګرېوانونو شلېدل، د کنځلو باران او په مخونو وینې پکې ولیدل شوې؟.

د پلاوي ناظر پرله پسې بادارانو سره په اړیکه کې ؤ،آخر د هغوی په مداخله شخړه پای ته ورسېده او یوه ته پکې لومړیتوب ورکول شو، هغه بې چاره پړسېدلي شونډې، شلېدلی ګرېوان ،شنه سترګه او وینې مخ پاڅېد ، سترې ستوړی اوساه ساه یې په خبرو پیل وکړ:

ګرانو ګډونوالو! خوښ یم چې ستاسو په مخکې ددوه سري حکومت نماینده ګي کوم.

زمونږ حکومت هغه حکومت دی، چې په ګردې نړۍ او تاریخ کې مثال نه لري، شکر دی ښه په انصاف او تقسیم مو حکومت او چارې وېشلې دي، دریځونه نیم په نیمه، چوکۍ نیم په نیمه، درغلۍ نیم په نیمه،اداري فساد نیم په نیمه او هرڅه ښه په شفافیت او انصاف نیم په نیمه دي.

دا چې یو وزیر وټاکي، بل یې نه مني او بل یې چې وټاکي بل یې نه مني؛ د دې لپاره دي، چې هرکار په شفافیت او چاڼ سرته ورسېږي.

شکر دی داسې ولسي او مشرانو جرګې لرو، چې ټول عمر یې په استجواب، استیضاح، استفسار، استنکار، استحضار، استکبار، استقبال، استدبار، استعذار، استکسار، استبشار، استعمار، استثمار.... کې تېرشو، چې کله هم مونږ وغواړو د هغوی له لارې وېرول، بدلول،ټاکنې او ګوښه کونې سرته رسوو، د هغوی چې هم لږې خېټې سپورې شي،نود غوړولو لپاره کوم وزیر مزیر را استجواب یا استیضاح کړي.

تاسو ته معلومه ده، چې د چا په اړتیا پوره کولو کې څومره ثواب دی؟!

مونږ ټول د ثواب کارونه ښه په شفافیت، انصاف او نیم په نیمه کوو.

دا چې د خپلوی پاللو کې ثواب دی؛ نو ځکه مو خپلو کلینډرانو، اشپزانو، څارونکیو، بزګرانو، پالشیانو، نایانو او نورو ته د لوړو زده کړو راغلي بورسونه ورکړل او بهرنیو هېوادونو ته مو ولېږل، ترڅو مو هم هېواد نوم وګټي او هم لایق لایق کدرونه راستانه شي.

ژبنیو، سمتي او مذهبي اختلافونو ته د دې لپاره لمن وهو چې هرڅه نیم په نیمه او په انصاف شي.

دا چې تراوسه نه د دفاع وزیر لرو، نه الوتکې او ټانکونه .... دا د دې لپاره چې مونږ سوله غواړو او دا د جنګ توکي دي.

د ښه ګونډیتوب لپاره د ګونډیانو هره غوښتنه منو.

که هغوی راته وایي چې تذکره کې افغان مه لیکئ، مونږ وایو ښه ده اونه یې لیکو ،که هغوی وایي پوهنتون په دانشګاه بدل کړئ، مونږ وایو ښه ده بدل به یې کړو ، د ابو مسلم خراساني دتاریخي نوم سړک مو د دې لپاره د ګونډیانو د دپلوماتانو په نامه کړ، چې تاریخ د هغوی په ګټه بدل کړو.

هندوستان سره ددې لپاره اړیکې سستوو، چې ګونډیان مو خوشحاله شي، خپل لوړ رتبه او مخکښ مامورین د دې لپاره بدلوو، چې ګونډیان مو خوشحاله شي.

دا چې د ګونډيانو د ميزا ېلو ګوزارونوته ځواب نه وايو، او هغوی مو پرېښي دي، چې له کرښو راتېرشي او زمونږ په لړمانه کې ځانونو لپاره ودانۍ جوړې کړي، د دې لپاره چې ګونډيان مو خوشحاله شي.

زمونږ ددوه سري حکومت کارنامې، فضائل، مناقب او فعاليتونه ډېر زيات دي، چې په بل وخت کې به يې تاسوته وړاندې کړم، اوس ځم چې د خپلو پړسېدلو شونډو، شنې شوې سترګې او ټپونو درملنه وکړم، دا جامې به هم بدلې کړم.

ددوه سري حکومت بل نماينده ته بلنه ورکول شوه، خوهغه په سر سخت سخت ګوزارونه خوړلي وو، حالت يې نازک ؤ او روغتون ته يې ورساوه.